

# افغانستان

## دوه پېړۍ او دوه امپراتورۍ

ذکریا ملاتړ

۱۳۹۴ لمریز کال



# کتاب پېژندنه:


د کتاب نوم: افغانستان؛ دوه پېړۍ او دوه امپراتورۍ

لیکوال: ذکریا ملاتړ

خپرندی: د افغانستان ملي تحريك، فرهنګي څانګه

وېبپاڼه: www.melitahrik.com

ډیزاینګر: ضیاء ساپی

پښتۍ ډیزاین: فیاض حمید

چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

چاپکال: ۱۳۹۴ ل کال/ ۲۰۱۵م

د تحريك د خپرونو لړ: (۴۳)

# د تحریك یادښت

د افغانستان ملي تحریك د (۱۳۹۳ ل) کال په پیل کې له خپلو ګرانو هېوادوالو سره ژمنه کړې وه چې د دې کال په بهیر کې به (شل عنوانونه) بېلا بېل دیني، علمي، ادبي او ټولنیز اثار خپلې ټولنې ته وړاندې کوي. ملي تحریك دا ژمنه د یاد کال د کب پر (۲۸)مه نېټه پوره او د یوې پرتمینې غونډې په ترڅ کې یې شل عنوانونه علمي اثار هېوادوالو ته وړاندې کړل. ملي تحریك په یاده غونډه کې ژمنه وکړه چې د (۱۳۹۴ ل) کال په بهیر کې به انشاء الله د خدای (ج) په نصرت ټول ټال سل (۱۰۰) عنوانه بېلابېل علمي اثار ټولنې ته وړاندې کوي. طبیعي خبره ده چې دا اسانه کار نه دی، ډېر زیات زیار او زحمت ته اړتیا لري، خو ملي تحریك ټینګ هوډ کړی چې خپله دا ژمنه به هم د تېرې ژمنې په څېر عملي کوي. دا اثر چې ستاسو په لاس کې دی د همدې (سل عنوانونو) ژمنه کړو اثارو له جملې څخه دی، چې د چاپ جامه اغوندي. ملي تحریك هیله لري چې له دې اثر څخه به زموږ هېوادوال په زړه پورې ګټه پورته کړي. ملي تحریك له ټولو هغو لیکوالو، ژباړونکو، سمونچارو، مالي او معنوي مرستندویانو او چاپ چارو څخه چې ددې اثارو د چاپ په دې ټول بهیر کې یې یو بل سره مرسته او ملګرتیا کړې او دا فرهنګي بهیر یې بریالی کړی، د زړه له کومې مننه کوي او کور ودانی ورته وایي.

د هېواد د فرهنګ د ښېرازۍ په هیله

د افغانستان ملي تحریك فرهنګي څانګه

# سریزه

افغانستان د اسیا د لویي وچې په زړه کې یو داسې هېواد دی، چې د خپل خاص جغرافیوي او ستراتیژیک موقعیت له کبله د تاریخ په اوږدو کې د خارجي تیري کوونکو له خوا د هند د نیمې وچې د نیولو او ساتلو په عرض، تر سختو بریدونو او چپاوونو لاندې راغلی دی.

د هخامنشیانو، یونانیانو، عربانو، چنګیزیانو، مغلانو او انګریزانو څخه نیولې بیا تر روسانو پورې هېڅ یو خارجي ځواک په دې نه دی توانیدلی، چې په افغانستان څخه فاتح او بریالي ستانه شي.

د ایو ځرګند حقیقت دی چې د افغانستان مجاهد او قهرمان ولس په تش لاس د ایمان او غیرت په زور د نولسمې او شلمې پېړۍ په دوران کې د وخت دوه لویو استعماري امپراتواریو ته تاریخي او شرمناکه ماته ورکړیده.

د افغانانو په دې تاریخي بریو باندې د ګڼو افغاني لیکوالو او تاریخ څېړنکو له خوا په مختلفو وختونو کې زیاتې څېړنې تر سره شوې دي چې زه یې په دې لیکنه کې یوازې نچوړ جاج او پرتله وړاندې کوم.

ځرنګه چې د انګریزانو د لومړي تیري (۱۸۳۹م.) څخه بیا د روسانو تر مسقیم پوځي تیري (۱۳۵۸ هـ. ش.) ترمنځ تقریباً یو سلو پنځوس کلونو تیرشوي وو مګر دغو دواړو پوځي ځواکونو د افغانستان د نیولو او بیا ماتې په برخه کې په یو ډول سرنوشت باندې اخته شوي دي.

زه د خپلې پورتنۍ خبرې د پخلي له پاره لومړی د دې دواړو ځواکونو د څو مشترکو کارونو او ټکو یادونه کوم، او ورسته یې بیا تفصیل رواړم.

۱- انګریزانو ارزو درلوده چې د خپلې امپراتورۍ سرحدونه د افغانستان شمال او غرب خواته پراخه کړي.

روسانو هم غوښتل چې د خپلې امپراتورۍ سرحدونه د جنوب او شرق په لور پراخه کړي.

دواړو ځواکونو د دې موخو د سرته رسولو له پاره د افغانستان نیول او ساتل ضرور ګڼل.

۲- انګریزانو هغه وخت د افغانانو د سرتاسري پاڅون پر اساس ماته وخوړه او روسانو هم د افغانانو د یو سرتاسري پاڅون په نتیجه کې ماته وخوړه.

۳- انګریزانو د خپل پوځي تیري په وخت کې د افغانانو د تیر ایستلو له پاره یو فراري سدوزایي سردار شاه شجاع له ځان سره د خپلو لښکریانو په سر کې را روان کړی و او روسانو هم د خپل مستقیم پوځي تیري تر شا یو شړل شوی ګوډاګی ببرک کارمل د خپلو لښکریانو د لکۍ پسې تړلی و.

۴- انګریزانو د خپل تیري په لومړیو ورځوکې ځانونه د افغانانو مېلمانه بلل، مګر کله چې د افغانستان په ستراتیژیکو سیمو کې یې خپلې لښکرې ځای په ځای کړې، نو بیا یې ځانونه مېلمانه نه، بلکې حاکمان او واکداران بلل.

روسانو هم په لومړیو ورځوکې داسې ویل چې مونږ د کابل رژیم په خوښه او بلنه راغلي یو، کله چې افغانستان کې خارجي لاس وهنه بنده شي نو خپل پوځیان به د افغانستان څخه وباسو، مګر کله چې هغوی هم خپل پوځیان په ټول افغانستان کې ځای په ځای کړل، نو بیا یې داسې بهانه جوړه کړه چې زمونږ د خاورې جنوبي سرحدات د غربي هېوادونو تر خطر او ګواښ لاندې دي تر هغه پورې چې د غربیانو دا ګواښ موجود وي مونږ به دلته مېشت یو.

۵- کله چې شاه شجاع د عام دربار کولو څخه لیرې شو، نو د انګریزي پوځیانو له خوا محاصره او د یو بندي په شکل ساتل کېده او د امیر دوست محمد خان په بیا راتګ یې ډارولو.

روسانو هم د ببرک کارمل په کور باندې پیره کوله او د حفیظ الله امین د طرفدارانو له خوا یې د وژلو ویره ورته په زړه کې اچولې وه.

۶- د یو کره او تائید شوي راپور پر اساس د انګریزي او روسي ښکیلاک ګرو دواړو پوځي ځواکونو په افغانستان کې پنځوس زره پوځیان وژل شوي دي.

۷- د وخت دواړو سترو ځواکونو خپل پوځیان د افغانستان څخه په یو ساړه او غمجن ژمي کې ایستلي او ډېر په بد حالت اخته شوي دي. د پورتنۍ لنډې څرګندونې څخه وروسته به بې ځایه نه وي چې دا پېښې په تفصیل سره وڅېړو یعنی لومړی د انګریزانو پوځي یرغل (۱۹۳۹م) او بیا د روسانو پوځي یرغل (۱۳۵۸هـ-ش) د تاریخي حقایقو په رڼا کې وڅېړو. ترڅو د افغانستان د مېړني او مجاهد ولس کارنامې او یادګارنه د تل له پاره د تاریخ په زرینو پاڼو کې ژوندي وساتل شي.

# لومړی څپرکی

## پر افغانستان باندې د انګرېزانو لومړی

## پوځي تېری (۱۹۳۹ م.)

کله چې په نولسمه پېړۍ کې انګریزان په دې تمه او هڅه کې شول چې د خپلې امپراتورۍ سرحدونه د امو سیند تر حوزې پورې پراخه کړي او د هند د نیمې وچې د ساتلو له پاره د

روسانو د پرمختګ مخه ډب کړي، نو په دې موخه يې پر افغانستان باندې يرغل يو لازمي عمل وګاڼه.

هماغه و چې (۵۴۱۵۰) پوځيان يې په عصري وسلو سره سمبال د افغانستان د نيولو له پاره را مارش کړل.

انګريزانو داسې پرېکړه وکړه چې ټول پوځيان به د خيبر د تاريخي درې له لارې د جلال آباد له خوا نه په لنډه لار په کابل باندې خيژوي.

مګر د سيکانو واکدار رنجيت سنګ د خپلې ويرې او ډار له کبله د دې کار سره مخالفت ښکاره کړ. انګريزان مجبور شول چې د اوږدې لارې نه خپل پوځيان د سند د رودخانې په امتداد د ښکارپور څخه تير کړي او د بلوچستان د بولان درې څخه د کندهار په لور حرکت وکړي.

په (۱۸۳۹ م) کال د جنوري په شلمه د سند سيند غاړې ته ورسيدل په درياب يې پل وتاړه او په ښکارپور کې د شاه شجاع د لښکرو سره يو ځاى شول.

په دې وخت کې د هند د وایسرای لارډ اکلنډ له خوا یو تکړه انګریزي سیاسي کارکوونکی مکناټن د شاه شجاع سره د سفیر او فوق العاده استازي په توګه ټاکل شوی و.

د افغانستان خلک چې دا وخت د داخلي ګډوډیو او ناراميو څخه پوزې ته راغلي وو د یو داسې حکومت او پاچا په لټه کې وو چې فقط په هېواد کې سوله او امن راولي او بس.

انګریزانو د وخت نه په ګټې اخستلو سره د شاه شجاه په پلوۍ له پخوا نه په سلګونو اعلامیې خپرې کړې وې، چې په افغانستان کې د تاج او تخت رښتنی وارث د احمد شاه بابا لمسی شاه شجاع دی؟ کله چې نوموړی د چارو واګې ترلاسه کړي نو د ټولو مامورینو او محلي خانانو په معاشونو او جایګیرونو کې به پوره زیاتوالی راشي...

لنډه دا چې انګریزانو د شاه شجاع د پاچا کېدو له پاره له مخکې نه ډېر زیات زیار ایستلی و، تر څو نوموړی افغانانو ته د یو ګران او محبوب پاچا په توګه معرفي کړي. او خپل ځانونه د هغه سره د څو ورځو مېلمانه وښيي.

کله چې شاه شجاع د انګرېزي پوځیانو په مټ او مرسته د بولان د تاریخي درې له لارې د کندهار ښار ته ورسید نو انګرېزانو د شاه شجاع تاج پوښی په مراسمو کې خپل بیرغونه د پاچا د رسم تعظیم له پاره نیم ځوړند نیولي وو، او پاچا یې د (۱۰۱) توپو په ویشتلو سره په تخت کښېناو.

په دې وخت کې د زرګونو افغانانو په وړاندې (مکناټن) او جنرال (کین) د شاه شجاع په حضور کې د احترام مراسم په ځای کړل.

همدا شان ورته مراسم د شاه شجاع د زوی شهزاده (تیمور) له پاره په پېښور کې هم تر سره شول. انګرېزانو تر دې نېټې وروسته دوه میاشتې کندهار کې تیرې کړې تر دوو میاشتو وروسته یې په کلات او غزني حمله وکړه - که څه هم انګرېزانو ته په دې حمله کې زیات تلفات ورسیدل خو بیا هم غزنی ونیول شو.

کله چې امیر دوست محمد خان د غزني د نیولو څخه خبر شو نو سمدستي یې خپل ورور نواب عبدالجبارخان د مکناټن د ملاقات له پاره هلته ولیږلو.

مګر مکناټن د نواب د لیدلو څخه ډډه وکړه او د هغه ټولې غوښتنې یې رد کړې.

امیر دوست محمد خان د زیاتې مایوسۍ له امله خپله ټوله اردو او پوځ یوازې پریښود، بامیان او خلم ته وتښتید او له هغه ځایه د خپلو زامنو او وریرونو سره یو ځای د بخارا په لور لاړ.

د غزني تر نیولو وروسته انګریزانو د شاه شجاع سره یوځای د کابل په لور حرکت وکړ.

په (۱۸۳۹ م.) کال د اګست د میاشتې په (۷) نېټه بې له کوم مقاومت او مزاحمت څخه په ډاډه زړه او سړه سینه د کابل په ښار ورننوتل.

په دې وخت کې د کابل په زړګونو ښاریان د خپل حقیقي پاچا د لیدلو او ننداري له پاره راوتلي وو، کله چې د شاه شجاع په څنګ کې مکناټن او جنرال کین ولیدل شول نو په ټولو ښاریانو باندې د مایوسۍ سړه څپه راغله او خپلو کورونو ته بیرته وګرځیدل.

شاه شجاع د کابل په بالا حصار ننوت او د کندهار څخه وروسته په دوهم ځل بیا د تاج او تخت د کښېناستلو مراسم یې ونیول.

پر افغانستان باندې د انګریزانو دغه پوځي یرغل په شپږو میاشتو کې پای ته ورسید. کله چې هغوی د افغانستان په ټولو سیمو او ولایتونو کې خپل پوځونه ځای پر ځای کړل. نو په ښکاره ډول د انګریزانو په رویه او عمل کې بدلون ولیدل شو. هغوی نور ځانونه مېلمانه نه بلکې د افغانستان واکداران او حاکمان بلل او مکناټن په عملي توګه ځان د افغانستان صدراعظم وباله، ټول ملکي کارونه او عسکري

چارې، مقررۍ او برطرفۍ به د نو موړي له خوا سرته رسيدلې.

شاه شجاع به په لومړيو وختونو کې عام دربار کاوه چې د خلکو په عرايضو او مشکلاتو باندې په اسانۍ سره غور او اجراآت وکړای شي. مګر د هغه واک اختيار ورو ورو د کميدو خوا ته روان و. بالاخره يو وخت داسې هم راغی چې نوموړی به د انګريزانو له اجازې پرته د خپل دربار او استوګن ځای د باندې هم نشو وتلای. د پاچا په عمارت او دربار د انګريزانو د محافظ ګارډ پيره وټاکل شوه او د پنځه زره انګريزي پوځ له خوا پاچا د يو بندي په توګه ساتل کيده.

يو وخت شاه شجاع د مکناټن څخه وغوښتل چې په افغانستان کې اوس حالات سم شوي او ارامي راغلې ده ستاسې پاتې کيدو ته نور ضرورت نه ليدل کېږي.

مکناټن ورته په ځواب کې وويل: د امير دوست محمد خان دويم ځل د راتګ خطر شته، انګريزان تر هغې پورې نه شي وتلای تر څو چې دغه خطر له منځه نه وي تللی. شاه شجاع د

مکناټن څخه یو وخت دا سې غوښتنه هم کړې وه، چې د مجاهدینو او غازیانو سره باید سوله وشي او رهبران او مشران یې معاف کړی شي.

مګر مکناټن نه یوازې دا چې د پاچا پشنهادونه یې رد کړل، بلکې دا سې پریکړه یې وکړه چې شاه شجاع نور له بالاحصار څخه وباسي او د انګریزانو نظامي قشلې ته یې ولیږوي.

لنډه دا چې شاه شجاع د انګریزانو د ناخوالو څخه دومره په تنګ شو چې نور ځان د سلطنت څخه ګوښه کړي او د حج په بهانه له افغانستان څخه پښې سپکې کړي مګر په دې کار سره هم بریالی نه شو.

د انګریزانو دا ناسمه رویه افغانانو ته هغه وخت ښه معلومه شوه، چې کله یې د کابل حاکم ملا عبدالشکور خان لیرې کړ او د هغه په ځای محمد عثمان خان نظام الدوله مقرر کړ. د انګریزانو په دې کار سره افغانان پوه شول، چې پاچا نور د انګریزانو سره بندي دی او کارونه ټول مکناټن کوي.

تر دې نښتې وروسته په هېواد کې د مسجد ملا امامانو او مذهبي مشرانو د پاچا نوم له خطبې څخه لېرې کړ او د انګريزانو په ضد يې د عمومي پاڅون اعلان وکړ.

دا وخت د کوهدامن مجاهدين د مير مسجدي خان په مشرۍ او د تګاب او نجراب مجاهدين د سلطان محمد خان په مشرۍ د جهاد او غزا په نيت راپورته شول. او د کابل- جلال آباد لويه لار يې تر تهديد او حملو لاندې ونيوله.

کله چې امير دوست محمد خان د انګريزانو په مقابل کې د کابل د خلکو د پاڅون او جهاد اعلان څخه خبر شو نو سمدستي يې په شمالي کې ځان غازيانو ته ورساو.

مير مسجدي خان او نورو مشرانو د امير دوست محمد خان څخه د يو ملي رهبر په توګه استقبال او درناوی وکړ.

مګر ناڅاپه امير دوست محمد خان له مجاهدينو د صف څخه ځان وايستلو او ورک شو.

د ۱۸۴۰م. کال د نوامبر څلورمه نېټه ده چې امیر دوست محمد خان مکناټن ته تسلیم شو. مکناټن نوموړی د خپلې کورنۍ سره یو ځای هندوستان ته ولیږداوه. او د یو بندي په توګه یې هلته ساتنه کیدله.

د پروان او کاپیسا مجاهدینو چې کله د امیر دوست محمد خان په تسلیمۍ باندې خبر شول نو په دې پېښې سره هغوی روحیات له لاسه ورنه کړل، او د پخوا په شان یې د دښمن په ضد خپل جهاد ته دوام ورکړ.

د کابل د خلکو د پاڅون څخه وروسته، د کندهار مجاهدیو د محمد اختر خان په مشرۍ او د هرات مجاهدینو د وزیر یار محمد خان په مشرۍ د انګریزانو په مقابل کې د جهاد اعلان وکړ.

په کندهار کې انګریزانو د پوپلزیو مشرانو ته سل زره روپۍ رشوت ورکړ چې پوپلزي او بارکزي په خپلو منځو کې سره وجنګوي- مګر د انګریزانو دا دسیسه هم ناکامه شوه. په کندهار کې د عمومي مجاهدینو مشري میرزا احمد خان او د

ابدالي قوم مشري د عطا محمد خان په لاس کې وه، او د غلجا يي مجاهدينو مشرتوب د محمد خان او مير عالم خان په غاړه و.

ځرنګه چې، دانګريزانو زيات شمېر پوځيان د کندهار د مجاهدينو سره په جګړه کې بوخت وو، نو هېڅکله يې دا وخت پيدا نه کړ چې له کندهار څخه کابل ته کومکي پوځ را وليږي.

همدا شان د غزني مجاهدين د ملک محمد خان او تاج محمد خان په مشرۍ د انګريزانو په مقابل کې راپورته شول او په (١٨۴١ م.) کال يې د کندهار او کابل ترمنځ عمومي لار بنده کړه. د ګرديز او زاوه د کليو مجاهدين هم د (١٨۴١ م.) کال په دسمبر مياشت کې د انګريزانو په ضد راپورته شول. مکناټن د هغوی د مقابلې له پاره يو لوی پوځ واستاوه مګر بېرته په ماتې سره راستون شول.

انګريزانو چې دا وخت شل زره پوځ په کابل، پنځلس زره په کندهار پنځه زره په جلال آباد او لس زره پوځ په غزني، کلات

او باميانو کې د وخت په عصري وسلو سره ځای په ځای سمبال کړي و. خو د دې مجهز پوځ په مقابل کې افغاني غازيانو له دوی سره يوازې د دارو په ټوپکو، تورو او نيزو مقابله کوله.

د افغانستان په تاريخ کې (۱۸۴۱ م.) کال د نوامبر دوېمه نېټه يوه مهمه او له وياړه ډکه ورځ ګڼل کېږي.

د پورتنۍ نېټې څخه يوه ورځ دمخه د مجاهدينو انقلابي شورا د کابل ښار د عاشقان او عارفان په مشهوره ناحيه کې د انګريزانو سره د منظم جهاد طرحه وړاندې او د عمومي پاڅون له پاره يې پلان ترتيب کړ، د هر مشر له پاره جلا جلا وظايف وټاکل شول، د امير دوست محمد خان وراره سردار محمد زمان خان د انقلاب د مشر او امين الله خان لوګری يې د مرستيال او نائب په توګه وټاکل.

سربېره پر دې يوه دولس کسېزه کميټه يې د جنګ او سولې د چارو د سمون له پاره وټاکله. د کابل ښار دا پاڅون تر (۲۵)

ورځو پورې اوږد شو ، تر دې وروسته د هرې ورځې په تېرېدو سره د انګرېزانو په پوځونو باندې د محاصرې کړۍ تنګېدله.

بالاخره د نوامبر د میاشتې په (۲۵) نېټه (۱۸۴۱ م.) کال مکناټن د سردار محمد زمان خان خاص نماینده سلطان محمد خان سره پټې خبرې پېل کړې.

په همدې ورځو کې سردار محمد اکبرخان او سلطان احمد خان چې د بخارا پاچا له بنده نوی راخلاص شوی وو، کابل ته راورسېدل او د ملي مبارزینو سره یوځای شول. له دې نېټې څخه یو ورځ وروسته په (۱۸۴۱م.) کال د نوامبر په (۲۶) نېټه میرمسجدی خان مسموم کړای شو. درې ورځې وروسته غازي عبدالله خان اڅکزیي شهید کړی شو. مګر د ډېر زړ د هغوی ځای د سردار محمد اکبر خان او محمد شاه خان غلجایي په راتګ سره ونیول شو.

مکناټن په دې وخت کې شاه شجاع ته ورغی او ورڅخه یې وغوښتل چې د انګرېزانو نظامي قشلې ته راشي. مګر شاه شجاع د انګرېزانو پوځی قشلې ته له تګ څخه انکار وکړ

بالاخره مکناټن مجبور شو چې د مجاهدینو د مشرانو سره غیر مستقیمې خبرې پېل کړي، یو مسوده یې چې، په څلورو مادو کې ترتیب شوې وه د مجاهدینو مشرانو ته وړاندې کړه، په مسوده کې داسې راغلي وو.

۱- انګریزي پوځونه به له افغانستانه څخه وځي.

۲- شاه شجاع به له حکومت څخه لرې او لودیانه ته به واستول شي، او هر کال به نوموړی ته درې سوه زره روپۍ دمعاش په توګه ورکول کېږي، او پر ځای به یې امیردوست محمد خان کابل ته واپس راستون شي.

۳- انګریزي پوځونه به د وتلو تر اخیري نېټې پورې یو افغاني سردار د خوراک او پوشاک د برابرولو په غرض له ځان سره ساتي.

۴- انګریزان به د بیا له پاره د افغانستان په خاورې یرغل نه کوي تر هغه چې په افغانستان کې یو دوست حکومت د هغوی د رابللو غوښتنه نه وي کړې.

د مجاهدینو مشرانو هم د انګریزانو د پورتني قرارداد د مسودې په وړاندې له خپل اړخه د یو قرارداد مسوده چې په دولس مادو کې ترتیب شوې وه مکناټن ته واستوله چې د هغې مسودې مهم ټکي دا دي:

دوه کسه افغانان به د کابل څخه تر جلال آباد پورې د بدرګې په ډول د انګریزي پوځیانو سره ځي. انګریزان به د مخه خپل پوځونه د کندهار، جلال آباد او غزني څخه وباسي او خپل ټول جنګي مهمات به افغانانو ته سپاري.

د بیا له پاره به انګریزان د افغانستان نوم هم په خوله نه اخلي.

د انګریزانو د وتلو تر پای نیټې پورې به افغانان د دوی د پوځ ساتنه په غاړه اخلي.

دا وخت د کابل د سخت ژمي له کبله انګریزان د سختې لوږې او کاختۍ سره مخامخ وو. د مجاهدینو مشرانو د هغوی سره د خپلو وعدو پر اساس د نغدو پیسو په بدل کې د درې سوو

زرو معادل غله او خورا که په هغوی باندې داسې ګرانه خرڅه کړه چې یو لپه غنم یې ورباندې په یوه روپۍ وپلورل.

کله چې انګریزانو ته غله او خوراکه په لاس ورغله او هم یې د بالاحصار څخه پنځه زره محاصره شوی پوځ چې د کابل ښاریانو د تنګ په وخت کې ورباندې ایشیدلې اوبه او نور ګنده شیان وراچول د نظامي قشلې سره یو ځای شول، نو مکناټن بیا ډاډه شو او په نویو د سیسو یې لاس پورې کړ. دا ځل یې د امیر دوست محمد خان د کشر زوی سردار محمد اکبر خان سره په پټه توګه د یو قرارداد مسوده چې پنځه مادې یې درلودې وړاندې کړه. سردار محمد اکبر خان د دې له پاره چې مکناټن ټګي د مجاهدینو مشرانو ته معلومه کړي د دغه قرارداد په منلو هوکړه ور سره وکړه، خو په دې شرط چې د تړون لاسلیک د خاصو مراسیمو په ترڅ کې تر سره شي.

د (۱۸۴۱م) کال د دسمبر (۲۴) نېټه وه چې مکناټن سهار وختي د خپلو درې لویو جنرالانو سره چې د یوې ډلې سپرو له خوا بدرګه کېده د نظامي چوڼې څخه راووتل او هغه ځای ته

راغلل چې سردار محمد اکبرخان، محمد شاه خان، خدابخش خان او مومن خان ورته په انتظار کې ناست وو.

دواړو خواوو خبرې پیل کړی، لومړی سردار محمد اکبر خان ورته هغه خبرې او قراردادونه یویو په ګوته او یاد کړل، چې انګریزانو د افغاني مشرانو سره یو د بل په خلاف لاسلیک کړی وو. په پای کې سردار محمد اکبر خان مکناټن ته مخ واړاوه او په سخته لهجه یې ورته وویل...تاسو په خپلو خبرو او وعدو باندې ټینګ نه یاست؟ د درواغو، ټګۍ او چل څخه بل هیڅ کار نه لری تل غواړی، چې افغانان یو د بل په ضد ولمسوئ او تاسو خپل اقتدار په مونږ جاري وساتئ، نو ښه به داوي چې تاسو نور زمونږ سره بندي پاتې شئ او یو سپاهي موهم را څخه ژوندی لاړ نه شي.

مکناټن چې د دغو ټولو خبرو په مقابل کې ځواب نه درلود، حیران او چپ پاتې و. سردار محمد اکبرخان نوموړی د لاس څخه ټینګ راونیو او د ښار په لور یې د ځان پسې راکش کړ،

مکناټن په دې وخت کې په سردار محمد اکبرخان د حملې کولو ګواښ او هڅه وکړه.

مګر سردار محمد اکبرخان ډېر ژر د مکناټن په بد نیت پوه شو، سمدستي یې په مکناټن حمله وکړه، مکناټن او کپتان (تریور) دواړه د سردار محمد اکبرخان او د هغه د ملګرو په واسطه ووژل شول، کپتان میکنزي یې د ځان سره بندي بوتلو او بلارنس ته یې په دې عرض د تېښتې زمینه برابره کړه چې د انګریزانو قشله د مکناټن د مرګ له پېښې څخه خبره کړي.

د دې تاریخي پېښې او بري وروسته د مجاهدینو مشرانو په خپل منځ کې یوه لویه جرګه جوړه کړه او خپل وړاندې شوې دولس نکاتي قرارداد باندې یې درې نورې مادې هم ور زیاتې کړې، چې تر دې وروسته به انګریزان خپل ټول پوځي او جنګي مهمات افغانانو ته سپاري.

بې غیر د شپږو توپونو به نوره ټوله توپخانه افغان مجاهدینو ته تسلیموي.

او د ربـيـم دا چې د يرغملو انګريزانو سره به ښځې هم پاتې کېږي.

د نويو ورزياتو شوو مادو د قرارداد مسوده يې د انګريزانو قشلې ته واستوله د انګريزانو له خواهم سمد ستي د جنرال الفنستن او پاتنجر په مشرۍ نظامي شورا جوړه شوه او د انګريزي يرغملو پوځيانو سره يې د ښځو پاتې کېدو نه غير نور ټول د مجاهدينو شرطونه په ځان ومنل.

او د خپلو پوځيانو د وتلو له پاره يې د (۱۸۴۲م.) کال د جنورۍ شپږمه وروستۍ نېټه وټاکله..

د قرارداد له مخې چې کله د انګريزانو د پوځونو د وتلو وروستې نېټه راورسيده.

نو لومړی يې ټوله توپخانه مجاهدينو ته تسليم کړه.

انګريزانو دا وخت ځکه د بيړې څخه کار واخيست چې نوره ورسره د پوځيانو له پاره توښه او خوراکه خلاصه شوې وه، او يوازې د شپږو ورځو توښه يې درلوده.

د قرارداد پر اساس په لومړۍ ورځ ټول پوځ د کابل له ښار څخه وایستل شو، دا شپه یې په بګرامیو کې راغله چې نسبتاً وربانديِ ښه تیره شوه.

په دې وخت کې د کابل مجاهدینو ته پرله پسې خبرونه راورسیدل، که چېرې د جنرال الفنستن پوځونه د جنرال سیل له پوځونو سره یو ځای شي. او هم د جنرال پالک پوځیان د جلال آباد له خوا نه او د جنرال ناټ پوځیان د کندهار له خوانه پر کابل حمله راوړي، نو بیا به د افغانستان څخه د انګریزانو د پوځونو د ایستلو مسئله اوږده او د یو لړ ستونزو سره به مخامخ شي.

نو پر دې اساس مجاهدینو پریکړه وکړه چې د جنرال الفنستن ټول پوځ جلال آباد ته د رسیدلو څخه دمخه په لاره تباه او له منځه لاړ شي.

د پورتنۍ پریکړې پر اساس د الفنستن ټول پوځیان د یوې هفتې په دوران کې د کابل- جلال آباد په لویه لار د مجاهدینو

د سختو حملو لاندې راغلل او د (۱۷) نیم زره پوځ څخه یوازې یو کس ډاکتر برایډن په ژوبل حالت کې ځان جلال آباد ته ورساو - ډاکتر برایډن د کابل - جلال آباد په لویه لار د انګریزانو د پوځیانود تباهي ټوله کېسه خپلو انګریزي حاکمانو ته تیره کړه.

داسې وایي چې، د دې جنګ د شدت او د هشت له امله یو بل انګریز ډاکتر (دف) خپل د وینې رګ پرې کړ او انتحار یې وکړ.

انګریزان ځکه په دې جنګ کې د زیاتو تلفاتو سره مخامخ شول چې د قرارداد مطابق یې خپل پوځونه دمخه د جلال آباد او کندهار څخه ونه ایستل.

افغان مبارزینو د دې تاریخي بري نه وروسته سردار محمد اکبرخان سمدستي د جلال آباد ښار تر محاصرې لاندې ونیو، انګریزي بندیان چې شمېر (۴۴) کسو ته رسیده، لغمان ته بوتلل او هلته یې د بدیع آباد په کلا کې تر څلورو میاشتو

پورې وساتل. د دې له پاره چې د جلال آباد محاصره د ختيځ خوا نه ماته نه شي، د احمد خان ميراخور په نوم يو تکړه مجاهد يې خيبر درې ته وليږلو تر څو شينواري، اپريدي او مومند قامونه د انګريزانو په ضد په جهاد لاس پورې کړي.

سردار محمد اکبر خان او محمد عثمان خان د پنځلس زره مجاهدينو په ګډون د جلال آباد په ښار حمله وکړه -د دې حملې نه وروسته په کابل کې د امين الله خان لوګري او مير حاجي په مشرۍ کې لويه غونډه وشوه - په غونډه کې د جلال آباد په لور د جهاد اعلان وشو. په غزني کې هم يوازې د څو کسو انګريزي بنديانو څخه نور د انګريزانو نوم او نښان پاتې نه شو.

په کندهار کې هم مجاهدينو د پرله پسې حملو پر اساس (۸) زره انګريزي پوځيان وو ژل شول او درې سوه اوښان يې د مجاهدينو لاس ته غنيمت راغلل.

لندڼه اچې د جنرال ناټ او جنرال سیل پوځونه په کندهار او جلال آباد کې د دا سې سختو ورځو سره مخامخ شول چې، د تېښتې لار ور څخه ورکه شوه.

کله چې انګریزانو د جنګ په ډګر کې د افغانو څخه سخته ماته وخوړه نو د مجبورۍ له امله د جنګ په ځای د ډیپلوماسۍ لاره غوره وګڼله.

تر څو له دې لیارې څخه د خپلې امپراتورۍ د شرمناکې ماتې بایللی نوم بېرته ژوندی کړي.

د یو کره خپور شوي راپور له مخې انګریزانو په دې جنګ کې (۵۴) زره پوځیان شل ملیونه پونډه او پنځوس زره اوښان له لاسه ورکړل. د دې جنګ د غلت سیاست له امله د هند ګورنر جنرال لارډ اکلنډ بدل کړی شو او په ځای یې لارډ ایلنبرو وټاکل شو.

کله چې د کابل- جلال آباد په لویه لار د انګریزي ټولو پوځونو د تباهۍ خبر او په کندهار کې او جلال آباد کې د زیات شمېر انګریزي پوځیانو محاصره کیدل او د مجاهدینو سره د شاه شجاع د ملګري کیدلو خبر په ټول هندوستان کې خپور شو، نو سم له لاسه د هند د نوي ګورنر جنرال لارد ایلنبرو له خوا امیر دوست محمد خان د منصورۍ له غرونو څخه کلکتې ته راوغوښتل شو. دا وخت چې امیر دوست محمد خان د افغانستان د جنګ د حالاتو او د انګریزانو له ماتې او تباهۍ څخه بیخي ناخبره و. کله چې امیر د لارد ایلنبرو نرمه او پسته لهجه وکتله نو لومړی ډېر حیران او خوشحاله شو.

د هند ګورنر جنرال امیردوست محمد خان ته په نرمه ژبه وویل:

انګریزان تر دې وروسته غواړي خپل پوځیان له افغانستان څخه وباسي او تاسو بېرته د کابل پر تخت کښېنوي.

انګرېزان له تاسو سره دوستي غواړي. زمونږ د دې نظريې او اقدام سره تاسو څه ډول فکر لرئ؟

امير دوست محمد خان چې د انګرېزانو دومره مهرباني وليده نو د ټولو لومړی يې د زړه له اخلاصه تشکر ترې وکړ.

وروسته بيا لارډ ايلنبرو يو وړانديز وکړ، چې سردار محمد اکبر خان د انګرېزانو په مقابل کې د مجاهدينو مشر دی. که تاسو خپل زوی ته آمر وکړئ چې د خپلو مجاهدينو او غازيانو سره يو ځای د هندوکش شمال ته پر شا لاړ شي.

تر څو انګرېزي پوځيان يو ځل بيا د خپلې لويې امپراتورۍ د حيثيت د ساتلو په غرض کابل ته ولاړ شي او له هغه وروسته بېرته يو ځای د خپلو بنديانو سره د هندوستان په لور راستانه شي، د دې کار په کولو سره به تاسو د خپلې کورنۍ سره يو ځای د افغانستان د تاج او تخت د بېرته نيولو په غرض، د کابل په لورې حرکت وکړئ.

امیردوست محمد خان چې هېڅکله یې د خپل هېواد د خلکو په جهادي ځواک باور او تکیه نه لرله، او له بلې خوا د هندوستان د ګرمې هوا او د زندان ناخوالو ډېر ځورولی و، یو ځل بیا یې په یو اړخېزه توګه د انګریزانو سره یو شرمناکه قرارداد چې د ټول هېواد، مجاهدینو او حتی د خپل ګران زوی په ضد یې و، لاسلیک کړ. تر څو چې نوموړی امیر ژوندی و، د دغه شرمناک قرارداد پا بند او پیرو پاتې شو.

په داسې حال کې چې افغاني مجاهدینو د امیر دوست محمد خان د کورنۍ د حیثیت ساتلو په غرض (۳۰۰) سوه لوړ رتبه انګریزي منصب دار او مامورین د ځان سره د بندیانو په توګه ساتلي وو امیر دوست محمد خان د انګریزانو سره د دغه بې قید او بې شرطه قرارداد د لاس لیک څخه وروسته سردار محمد اکبر خان ته خپلې عینکې او د نسوارو دبلی د نښانې په توګه ولیږه، تر څو د انګریزانو سره د جهاد نه لاس واخلي. سردار محمد اکبرخان هم دانګریزانو د یو لړ ګواښونو او د پلار د غوښتنو پر اساس د افغاني مبارزینو بریالی دریځ

او فشار، د ماتې خوړونکو او مغلوبو انګرېزانو په سر باندې څه ناڅه کم کړ.

سردار محمد اکبرخان د خپل پلار د لیک او کړن لارې په برخه کې د افغاني مشرانو سره سلا مشورې پیل کړې، او دا یې لازم وبلل، چې انګریزي بندیان د محمد شاه خان په لاس د لغمان څخه د کابل ولایت ته راولي.

(۱۸۴۲ م.) کال د اپریل په پنځمه نېټه شاه شجاع چې د جلال آباد په لور د ملي لښکرو سره روان و، سهار وختي د نواب محمد زمان خان، نورمحمد خان، شاه غاسي او دلاور خان پواسطه ووژل شو.

د شاه شجاع د وژول کېدو نه وروسته د کابل د سلطنت په سر باندې د نواب محمد زمان خان او امین الله خان لوګري په منځ کې اختلافات پیدا شول د یو لړ داخلي جنګونو او نا ارامیو څخه وروسته د مجاهدینو د مشرانو له خوا سردار محمد اکبر خان د مشر په توګه وټاکل شو.

سردار محمد اکبرخان د مجاهدینو د مشرانو سره د امیر دوست محمد خان پلان او نقشه د افغانستان د راتلونکي په برخه کې په صادقانه او رښتني ډول مطرح کړه او پخپله له کابل نه د ځان ایستلو په بهانه د بامیانو خوا ته لاړ د جنرال پالک پوځونو په جلال آباد کې د (۵) میاشتو تیرولو وروسته د کابل په لور حرکت وکړ. د دې پوځو نو سره یو ځای راغلی د شاه شجاع زوی شهزاده فتح جنګ د (۱۸۴۲ م.) کال د دسمبر په (۲) نېټه د کابل په بالا حصار کې په تخت کښېناست او بیا انګریزانو هغه ځای په توپونو سره والوزولو چې د مکناټن او (تریور) جسدونه پکې راځړول شوي وو.

څرنګه چې په انګریزانو نور د کابل ښار تنور ګرځیدلی و. نو په (۱۸۴۲ م.) کال د نومبر په میاشت کې یې د افغانستان څخه د خپلو پوځیانو په وتلو شروع وکړه. شهزاده شاپور چې د فتح جنګ څخه وروسته د کابل پر تخت ناست و، د انګریزانو د وتلو او د وزیر اکبر خان د راتګ د خبر په اوریدلو سره له کابل څخه وتښتید.

امیردوست محمد خان چې شل ورځې یې په لاهور کې تېرې کړې وې، د پېښور له لارې کابل ته راستون شو. او د نواب محمد زمان خان، وزیر اکبرخان، نواب جبارخان او سلطان احمد خان له خوا یې په سرحد کې هر کلی وشو او پر دې اساس امیر دوست محمد خان د درې کاله او څلورو میاشتو سلطنت څخه وروسته په دوېم ځل بیا د کابل پر تخت کښېناست.

موهن لال چې د امیر دوست د ژوند په حالاتو یې کتاب لیکلی - او دغه کتاب د انګریزانو له خوا هم تاید او منل شوی دی، پر افغانستان باندې یې د انګریزانو د یرغل او د لارډ اکلنډ او مکناټن تیروتنې په دې ډول بیان کړې دي.

۱- د ملي مشرانو سره مخالفت او د هغوی بې احترامي کول.

۲- د اداري فسادونو زیاتیدل او په مقابل کې یې د آمرینو بې تفاوته پاتې کیدل.

۳- د افغانستان په کمو او لږو عايداتو باندې د يوې لويې اردو د مصارفو تحميلول.

۴- په مملکت کې ببرته د بارکزيو مشرانو په قدرت راوستل، ميشته کول او د هغوی بې احترامي کول.

۵- د يو ملت د ملي روحياتو او ملي عنعناتو سره بې ځايه تصادم او بې اعتنايي کول.

۶- د ښورښ او الې ګولې په وخت کې د هند څخه سم لاسي کومک نه غوښتل.

۷- د لارد کين په ځای د يو بل ناروغ او نالايق جنرال الفنستن ټاکل.

يو بل انګريز منصب دار (ډيورنډ) په خپل کتاب کې د افغانانو له خوا د انګريزانو دغه ماته د هند په تاريخ کې ډېره لويه او شرمناکه ماته بولي.

همدارنګه له دې شرمناکې ماتې وروسته په ټول ختیځ کې د انګریزانو په مقابل کې د ټولو ملي مبارزینو له خوا د آزادۍ احساسات راوپاریدل.

لنډه دا چې انګریزان په افغانستان باندې د دغه پوځي یرغل څخه وروسته دې نتیجې ته ورسیدل، که چیرې انګریزان بیا له پاره په افغانستان باندې پوځي یرغل وکړي، نو دا به د انګریزانو له پاره کامیابي نه وي او نه به یې په قدرت کې زیاتوالی راشي، بلکې هغوی به نور هم کمزوري شي.

تر دې وروسته باید د افغانستان د نیولو په برخه کې د انګریزانو د پراختیا غوښتنې پلان او نقشه له سر او نظر وغورځول شي

# دویم څپرکی

## پر افغانستان باندې د روسانو مستقیم پوځي یرغل (۱۳۵۸\۱۰\۶ل)

کله چې روسي تزاریان د خپلې امپراتورۍ جنوب خواته د پراخوالي او تودو اوبو ته د رسولو په فکر کې شول، لومړی یې زمونږ د هېواد په شمالي ګاونډي، ترکستان یرغل وکړ.

د تزاریانو هدف په دې حمله کې داو چې د بخارا ، سمرقند او خیوې ازاد سیاسي موجودیت د نړۍ له نقشې څخه لېرې کړي او کرار کرار ځانونه هدف ته نږدې کړي.

کله چې دغه استعماري ځواک زمونږ د هېواد شمالي سرحد ته راورسید نو زمونږ د هیواد یوه برخه یعنی پنجده یې ونیوله او د خپلې امپراتورۍ پورې یې وتړله.

کله چې د دې تزارې امپراتورۍ په ظاهري بڼه کې بدلون راغی او نوې کمونستي څېرې رامنځ ته شوې، نو په ځان کې يې د ترکستان د خلکو سره د مقابلې توان ونه لید. په دروا غو يې هغوی ته د خپلواکۍ ورکولو وعدې ورکړې، کله يې چې د قدرت واګې ټينګې کړې. نو د بخارا سمرقند او خيوې خلک د هغوی د وعدو پر اساس د خپلواکۍ غوښتونکي شول. مګر نو يو بادارانو د هغوی دا غوښتنې د انقلاب ضد عمل وباله او د سور ګارد زيات شمېر پوځيان يې د هغوی د سر کوبو لو له پاره ترکستان ته واستول.

افغانستان چې دا وخت نوې له انګريزانو څخه خپلواکي ترلاسه کړې وه او د يو ازاد هېواد په حيث په نړۍ کې پېژندل شوی و.

غازي امان الله خان د روسانو نوې کمونيستي دولت په رسميت پېژني، ورسره د دوستي تړون لاسليکوي چې يو د بل په کرنيو چارو کې به مداخلت نه کوي.

په ښکاره خو روسانو د دغه تړون هرکلی وکړ او امان الله خان سره يې د هر ډول مرستو وعدې وکړې او دا يې هم ور سره ومنل چې د ترکستان خلکو ته به د حق خود ارادیت حق ورکوي او هم به پنجده ببرته افغانستان ته سپاري. مګر کله چې په ۱۹۲۹ م. کال د اکتوبر په میاشت کې محمد نادر خان د قدرت واګی تر لاسه کړې، روسیه د ده حکومت په رسمیت پېژني.

دا هغه وخت دی چې د روسانو او مرکزي اسیا د مسلمانو ترمنځ چریکي جنګونو دوام درلود، او د انوربیګ ترمرګ وروسته یو بل پیاوړی بسمچي مجاهد ابراهیم بیګ په ځان باندې مجاهدین راټولوي په ابراهیم بیګ به چې کله سخته راغله نو افغانستان ته به را اوړیدلو، دلته به یې د یو څه تیاري وروسته بیا روسانو سره په جنګ پیل کولو. روسانو په محمد نادرخان باندې زیات فشار را وړ، چې ابراهیم بیګ ته اجازه ورنه کړي، چې د افغانستان له خاورې نه د روسانو په ضد فعالیت وکړي.

محمد نادرخان هم د روسانو د خوشحالولو له پاره خپل وروړ شاه محمود خان د یو منظم پوځ سره د هېواد شمال ته واستاوه.

ابراهیم بیګ ماته وخوړه او بېرته روسي ته فراري شو. په ۱۹۳۱ م. کال د اپریل په میاشت کې ابراهیم بیګ شهید شو او روسان د بسمچي نهضت د مزاحمت څخه بې غمه شول.(۱)

اوس به راشو د دې پوښتنې ځواب ته چې افغانستان ولې د روسانو په غېږ کې پریوت.

کله چې په ۱۹۵۹ م. کال پاکستان د سنټو په (پکټ) کې شامل شو. افغانستان د دې کار سره مخالفت وکړ. دا ځکه چې پاکستان د روس سره سرحد نه لري – دومره د روسانو د تهدید لاندې نه دی لکه څومره چې افغانستان دی. د دې کار په مقابل کې افغانستان د امریکا څخه د وسلو او نظامي مرستو غوښتنه وکړه.

مګر د امریکا له خوا دا غوښتنه په کلکه رد شوه. امریکایانو دا فکر کاوه چې افغانستان په وچه کې پروت هېواد دی، که یې روس هم ونیسي پروا نه کوي، ځکه بحر ته لار نه لري.

د امریکایانو د دې سوړ چلند پر اساس چې کله روسانو په ۱۹۷۸ م. کال په افغانستان کې کودتا وکړه، نو امریکایانو ورسره هم هغه وخت دومره دلچسپي ونه ښوده. د سردار محمد داود خان د سپینې کودتا سره یې هم بې تفاوتي ښودلې وه.

روسانو د محمد داود خان په کودتا او جمهوریت کې ډېر شمېر کمونیستان په حکومت کې ورداخل کړل چې د همدې کمونیستانو او نوکرانو څخه یې د محمد داود جمهوریت په رنګولو او بدنامولو کې هم کار واخېست.

د روسانو مناسبات چې کله د داود خان سره خراب شول- داود خان کرارکرار د لوړو چوکیو څخه د کمونیستانو په لېرې کولو پیل او اعلان یې وکړ، چې زه کومې پارټۍ پورې اړه نه لرم، مسلمان یم، کمونیست نه یم، له دې اعلان څخه

وروسته نوموړی اسلامي او بې طرفه هېوادونو ته خپل سفرونه پيل کړل.

محمد داود خان چې په ۱۹۷۷ م. کال مسکو ته سفر وکړ، نو برژنف وروباندې د غربي هېوادونو سره په اړيکو جوړولو اعتراض وکړ او ورته يې وويل:

پخوا د افغانستان په شمال کې د لويديځو هېوادونو متخصصينو او څېړونکو ته اجازه نه وه، مګر اوس داسې ليدل کېږي چې دا قاعده ماته شوې ده.

جمهور رييس محمد داود خان ورته په ځواب کې داسې وويل:

موږ به هېڅکله تاسو ته دا اجازه درنکړو چې خپل هېواد څنګه اداره کړو او څوک په کومو ځايونو کې وګمارو، دا د افغانستان د دولت پورې اړه لري...

د دې خبرو نه وروسته داود خان په غوسه را پورته شو. برژنف ورنه د يو بل خصوصي ملاقات غوښتنه وکړه. مګر داود خان د برژنف سره ملاقات کول رد کړ.

تر دې سفر وروسته داود خان خپله اتکا او تمه د روسيې څخه وشلوله په ګاونډيو، اسلامي او غربي هېوادونو يې اتکا زياتوله.

روسانو هم تر دې وروسته د داود خان په له منځه وړلو کې جدي شول. پرچميان او خلقيان يې سره يو ځای کړل، او په ۱۳۵۷ هـ.ش. کال يې په رڼا ورځ يو ولس بجې د داود خان په ضد کودتا پېل کړه. جمهور رييس محمد داود سره د خپلې ټولې کورنۍ ووژل شو. او په ځای يې نور محمد تره کی د انقلابي شورا د مشر، جمهور رييس او صدراعظم په توګه وټاکل شو، ببرک کارمل د هغه مرستيال او حفيظ الله امين د بهرنيو چارو د وزير په توګه اعلان شول او د فرمانونو په جاري کولو يې پېل وکړ.

د ښځو فرمان یې جاري کړ، د هغوی مهر یې دري سوه افغانۍ وټاکه. د سود او ګروې د لغوه کولو فرمان یې جاري کړ. د ځمکو او اصلاحاتو فرمان یې اعلان کړ، چې ځمکه د هغه چاده چې کار ور باندې کوي، او همداسې فرمانونو لړۍ روانه وه.

که څه هم روسانو په ښکاره د افغانستان د انقلاب او خلق د موکراتیک ګوند ملاتړ کاوه - خو د حفیظ الله امین په تګ لاره خوښ نه و.

ځکه حفیظ الله امین د پرچمیانو خلاف و. ډېر وخت تیر نه شو چې ببرک کارمل او د هغه خاص ملګری یې په کودتا باندې تورن کړل او د سفیرانو په توګه یې له هېواده بهر وشړل.

روسانو غوښتل چې حفیظ الله امین لرې کړي او په ځای یې ببرک کارمل بېرته راولي. د دې کار په عملي کولو کې زیات رول د هغه وخت (K,G,B) د مشر اندري پوف و.

نوموړی د روسيې رهبري په دې شکمنه کړې وه چې حفيظ الله امين د (C,I,A) سره اړيکې لري، يعنې بيخي د امريکايانو جاسوس دی.

نور محمد تره کی د ببرک کارمل او حفيظ الله امين د خپل منځي اختلافاتو په دوران کې د خفيظ الله امين پلوي کوله او هغه يې وفادار شاګرد باله.

کله چې نور محمد تره کی په **۱۳۵۸** ل کال د سنبلې په مياشت کې د ناپيلو هيوادونو په کنفرانس کې د ګډون له پاره کيوبا ته لاړ، ددې کنفرانس نه په واپسۍ کې په لنډ ډول په مسکو کې تم شو.

ددې تم کېدنې په دوران کې نورمحمد تره کي د ببرک کارمل سره د برژنف په حضور کې کتنه وکړه ، ددې کتنې په نتيجه کې داسې پريکړه وشوه ، چې حفيظ الله امين حتمي بايد له منځه لاړ شي او په ځای يې ببرک کارمل د صدراعظم په توګه وټاکل شي، په دې کار سره به خلک د دولت په ضد يو ځه ارام

شي، او هم به د تیرو ټولو تیروتنو او ستونزو پړه په حفیظ الله امین واچول شي.

مخکې تر دې چې نورمحمد تره کی کابل ته راستون شي. حفیظ الله امین د دې ټول جریان څخه د سید داود تړون له خوا خبریږي.

حفیظ الله امین په نورمحمد تره کی ړومبی شو، په ارګ کې د دوی تر منځ جنګ ونښت، نور محمد تره کی ونیول شو، چې وروسته بیا ووژل شو او په دې توګه حفیظ الله امین د حزب د عمومي منشي او انقلابي شورا د ریس په توګه د قدرت ټولې واګې په خپل لاس کې واخیستې.

کله چې حفیظ الله امین قدرت ته ورسید، نو د روسانو سره یې مناسبات نور هم خراب شول.

روسان هم د حفیظ الله امین د له منځه وړلو په پلان باندې په چټکې سره کار پیلوي.

لومړی یې امین په دې قانع کړ چې ارګ پرېږدي او تاج بېګ قصر ته لاړ شي تر څو په اسانه توګه یې له منځه یوسي. کله چې په ۱۳۵۸ هـ ش. کال د جدي په شپږمه روسانو په افغانستان باندې مستقیم تیری وکړ، یولک او شل زره پوځونه یې د ځمکې او هوا له لارې افغانستان ته داخل کړل. حفیظ الله امین یې له منځه یوړ او په ځای یې خپل نوکر او ګوډاګی ببرک کارمل راوست. د روسانو د مستقیمې مداخلې وروسته امریکا او ناټو هم داسې پریکړه وکړه چې افغانستان د روسانو سره د یو دوامدار جنګ له پاره ډېر موثر او محکم ځای دی.

پاکستان ته یې د افغانستان له امله ډېر اهمیت ورکړ. جنرال ضیاءالحق سره یې د زیاتو مالي او نظامي مرستو وعدې وکړې پاکستان هم د دې فرصت نه ګټه واخیسته چې وینه به د افغانانو تویږي او پیسې به زمونږ جیبونو ته راځي.

جنرال ضیاء الحق د دې کار د عملي کولو له پاره د افغانانو اوه رسمي او یوولس غیر رسمي تنظیمونه جوړ کړل.

د ببرک کارمل تکیه هم یوازې په روسانو وه، همېشه به یې د روسانو صفت کولو او د غربیانو به یې غندنه کوله. روسانو د ببرک له پاره څو مشاورین او محافظین ټاکلي وو. شپه او ورځ به د کارمل سره ناست وو، هغه به یې څارلو او مشورې به یې ورکولې د کارمل خوراک او پوشاک هم د روسانو په خوښه او لاس کې و.

روسي مشاورینو ټول کارونه په خپل واک کې اخیستي وو، یوازې د ببرک کارمل په لاسلیک او مهر به صادریدل.

ببرک کارمل ته به اول بیانیه په روسي ژبه لیکل کیده. بیا به د تاجیکي مشاور له خوا په پارسي ترجمه کیدله او کارمل به په ډېر فخر سره وړاندې کوله. په دې وخت کې هغو محصلینو چې په روسیه کې زده کړې کړې وې او د (K,G,B) په سازمان کې تنظیم شوي وو، ټول په افغانستان کې په دندو وګمارل شول، ځکه دوی په روسي ژبه ښه پوهیدل او روسانو ترې ښه کار اخستلای شو. تر دې وروسته په هر دولتي پست

باندې د وزير نه نيولې تر مدير پورې يو روسي مشاور او يو افغان ترجمان وټاکل شول.

د مشاور له اجازې پرته به تشناب ته هم څوک نشو تلای. د روسانو کوښښ داو چې تردې وروسته هر څه روسي شي. په دې لړ کې ښوونې او روزنې ته تر هر څه زيات پام وګرځيد، يعنې تعليمي نصاب يې روسي کړ، چې د راتلونکي نسل څخه د افغانيت مفکوره وباسي، دوی د اسلام په مقدس دين، افغاني اخلاقي او فرهنګي معيارونو باندې ملنډې وهلې، چاپلوسي د روسانو له پاره مود ګرځيدلی وه او د ټولو خلقيانو او پرچميانو کورونه د مشاورينو له پاره د عيش او نوش په ځايونو بدل شوي وو.

د هر وزارت نه نيولې تر مديرت پورې په هر اداري ارګان کې د (خاد) شبکې فعالې شوې. په هر کار کې به د (خاد) موافقه ضرور وه.

په نړيواله سطحه د ملګرو ملتونو له خوا هم په روسانو فشار داسې مرحلې ته رسيدلی و چې خپل پوځونه نور وباسي، که

چېرې روسان په ابرومندانه ډول له افغانستان څخه وتلو ته غاړه کېږدي، نو د خلق د يموکراتيک ګوند ته به په راتلونکي ايتلافي حکومت کې هم ځای ورکړی شي. مګر روسانو دا ويره لرله که چېرې له افغانستان نه ووځي. نو د دوی پلوي حکومت او طرفداران به له ځېرمې له منځه لاړشي.

د روسانو وړانديز دا و مخکې له دې چې دوی له افغانستان نه خپل پوځونه وباسي، خلا يې بايد د ملګرو ملتونو د سولې پوځونه ډکه کړي.

مګر پاکستان په دې نظر و چې دا خلا بايد پاکستاني پوځونه ډکه کړي او که داسې ونه شي نو په افغانستان کې به زياته مرګ ژوبله رامنځ ته شي او پاکستان ته به نور مهاجر هم رامات شي.

امريکا او روسانو په دی موافقه کړې وه چې په جنګ کې په دواړو ښکيلو ډلو باندې بايد وسلې قطع شي.

ګر باچوف هم په دې پوهیده چې د امریکا سره د مناسباتو جوړولو له پاره د دوی په منځ کې لوی خنډ د افغانستان مسله ده، ځکه چې امریکا په افغان مجاهدینو کلکه ولاړه وه.

د امریکایانو کوښښ داو چې څرنګه ګرباچوف په دې راضي کړي چې خپل پوځونه له افغانستان څخه وباسي او د قدرت انتقال په ارامه توګه سرته ورسیږي.

بالاخره روسانو داسې پریکړه وکړه چې د افغانستان نه خپل پوځونه وباسي او افغانستان دولت خپله دفاع نوره په خپله وکړي. ببرک کارمل د دې کار په مقابل کې جدي عکس العمل وښود چې زه هیڅ کله د دې پریکړې سره توافق نه لرم. که روسي پوځونه له افغانستان څخه ووځي، مونږ به ټول په وینو کې ډوب شو، انقلاب به ناکام شي.

روسانو ببرک کارمل ته په مقابل کې وویل:

د دې معنا داده چې هغه انقلاب چې تاسو په افغانستان کې عنوان کړی دی خلک يې نه مني او تاسو يې زمونږ د لښکرو په زور په خلکو منې؟

ګرباچوف په دې اړه په واضح ډول وويل، چې د شوروي اتحاد خلک له دې جګړې نه ډېر ناراضه دي، نور دوي خپل زامن د جګړې ليکو ته نه استوي.

خلاصه دا چې روسانو نه غوښتل چې ببرک کارمل نور په قدرت کې پاتې شي په څه بهانه يې مسکو ته وغوښتلو هلته ورته جريان ټول واضح کړ، د ببرک کارمل تر راتګ دوه ورځې وروسته په کابل کې پلينوم داير کړی شو، کارمل يې د ناروغۍ په نوم د ټولو دندو نه ګوښه کړ او په يوه پوځي الوتکه کې مسکو ته وليږل شو.

ډاکتر نجيب الله چې د ببرک کارمل له خوا ګوند ته جذب شوی و د قدرت واګی په لاس کې ونيولې. په هغه وخت کې چې په روسيه کې اندري پوف واکمن و، اندري پوف کوښښ کولو چې هماغه وخت ډاکتر نجيب الله قدرت ته ورسوي.

مګر د اندري پوف تر مرګ وروسته، چرننکو چې د برژنف سره هم نظر و د ببرک پښتې يې ور ټينګې کړې. او ډاکټر نجيب الله څه موده بيرته شاته شو. ډاکتر نجيب الله د ببرک کارمل برعکس د غربي نړۍ خبريالانو ته خپلې دروازې خلاصې کړې.

د (خاد) جاسوسي سازمان چې د ببرک کارمل په وخت کې نوموړي پخپله دهغه مشري کوله دا وخت ډېر قوي شوی و.

په دې وخت کې د ګرباچوف کوښښ دا و چې خلقيان پرچميان بيا سره يو ځای کړي او غير کمونستان په قدرت کې شريک کړي- په مهمو وزارتونو باندې دوی کښېنوي او پاتې نور وزارتونه غير کمونستانو ته ورکړي.

ډاکتر نجيب الله د خپلې بقا له پاره کوښښ کولو چې جنګ ته خاتمه ورکړي د ملي مصالحې په نوم يې کميسيون جوړ کړ او د روسانو سره يې په ګډه د دې کار له پاره تبليغات پيل کړل.

تصمیم دا سې ونیول شو چې مجاهدین هم په قدرت کې شامل شي قومي شوراګانې رامنځ ته شوې، ځینې نوې مقررۍ وشوې. دوکتور محمد حسن شرق د صدراعظم په توګه وټاکل شو.

په دولتي دستګاه کې ښکاره بدلون راغی. د (خاد) واک په کمیدو شو، د ملګرو ملتونو د خاص نماینده سفرونه کابل، اسلام آباد او تهران ته شروع شول.

د مخه تردې چې روسان له افغانستان نه ووځي ډاکتر نجیب الله هم په حسن شرق بدګمانه شو او په ځای یې سلطان علی کشمند وټاکل شو روسانو له افغانستان څخه په وتولو پیل وکړ ځکه د هغوی اقتصادي مجبوري وه، نور یې افغانستان ته پیسې، وسلې او خوراکي توکي نه شو برابرولی.

دا وخت په ډاکتر نجیب الله باندې، د روسانو، غربیانو، پاکستان، ایران او مجاهدینو له خوا ډیر سخت فشار و چې په هر حال باید قدرت پریږدي.

له بلې خوا په حکومت کې داخل د ببرک کارمل طرفدارانو هم په ډاکتر نجیب الله سخت فشار راوستی و چې په هره طریقه کیدای شي ډاکتر نجیب له منځه یوسي په دې وخت کې خلقیان هم د حزب اسلامي د ګوند سره په تماس کې شوې وو چې د (I-S-I) سره یې په ګډه د شهنواز تنې کودتا د دې ډول فعالیتونو یوه برخه وه.

د ببرک کارمل طرفداران هم د احمد شاه مسعود سره تنظیم شول. د شمال ملیشې او دوستم هم د نجیب خلاف شول. دا وخت د سولې پروسه د ملګرو ملتونو د ځانګړې استازې بنین سوان په لاس کې وه.

تر ډېرې سلا مشورې وروسته ډاکتر نجیب الله په دې سره موافقه وکړه چې یو انتقالي حکومت ته واک وسپاري.

د دې موقتي ادارې له پاره د (۱۵) کسو لیست تیار شو چې په دې کې د (۹) کسو لست ورته د کابل حکومت ورکړی و.

ملګرو ملتونو هم پاکستان باندې فشار راوړی و چې د مجاهدینو له خوا ورته شپږ کسان معرفي کړی شي. په حکومت کې د ببرک کارمل طرفدارانو دا کوښښ کولو چې د یوې پټې د سیسې له لارې بیا ببرک کارمل قدرت ته ورسوي، مګر دا د سیسه داسې ناکامه شوه چې نه ببرک کارمل قدرت ته ورسید او نه ډاکترنجیب په قدرت کې پاتې شو. په دې وخت کې داسې اوازې هم خپرې شوې چې ډاکتر نجیب الله تیار دی چې قدرت پخواني پاچا محمد ظاهر شاه ته وسپاري.

د دې کار سره جهادي تنظیمونو مخالفت وکړ او ظاهر شاه هم دا طرحه ونه منله. که په رښتیا سره دا طرحه هغه وخت عملي شوی وای نو افغانستان به د دومره تباهۍ او مشکلاتو سره نه وای مخامخ.

امریکا او پاکستان هم دې پایلې ته رسیدلي و، چې مجاهدین نشي کولای د جنګ له لارې د ډاکتر نجیب حکومت ختم کړي بلکې زیات کوښښ یې داو چې په داخل

کې د دوی تر منځ اختلاف راولي. چې بلاخره دا اختلافونه دې مرحلې ته ورسیدل چې ډاکتر نجیب الله مجبور شو چې د راډیو له لارې خپله استعفا وړاندې کړي په دې لړکې ډاکتر نجیب الله ته د اسحاق توخي له خوا احوال راورسیږي چې ټول ځایونه د هغه د کور په شمول محاصره شوي دي بله لار نشته دوی دواړه د هوایي میدان په لور د تیښتې حرکت کوي مګر په لارکې ورته د دوستم د ملیشې له خوا د ورتګ اجازه نه ورکول کیږي او ناچار د ملګرو ملتونو دفتر ته پناه وړي بل روایت داسې دی چې کله د سولې پروسه ناکامه شوه، بنین سوان ناڅاپه کابل ته سفر وکړ او غوښتل یې چې ډاکتر نجیب الله له کابل څخه وباسي ډاکتر نجیب د جنرال عظیمي څخه چې دا وخت د کابل د ګارنیزون عمومي قوماندان و د شپې نوم تر لاسه کوي د جمهوري ریاست څخه تر هوایي میدان پورې بنین سوان هم ورسره ملګری و، له شپږو پوستو څخه تیر شو، د هوایي ډګر وروستې پوسته چې ازبک ملیشه په

کې وه را وګرځول شو، ناچار د ملګرو ملتو دفتر ته راغی او پناه يې واخيسته.

د ډاکتر نجيب د رژيم په سقوط کې د ببرک کارمل، فريدمزدک، نجم الدين کاوياني او نورو ببرک پلو پرچميانو پوره لاس درلود.

دوی د احمد شاه مسعود سره په جبل السراج کې معاهده لاس ليک کړې وه چې جنرال دوستم او جنرال مومن يې هم د ځان ملګري کړي و، همدا لامل وچې د ډاکتر نجيب د سقوط نه وروسته په کابل کې لومړی واک جنرال عظيمي او عبدالرشيد دوستم ته په لاس کې ورغی.

همدا شان جهادي مشران د نوازشريف په مشرۍ په پېښور کې راټول شوي وو او فيصله داسې وشوه، چې صبغت الله مجددي به د دوو مياشتو له پاره رييس جمهور کېږي او يو عبوري حکومت به جوړوي، تر دوه مياشو وروسته به استاد برهان الدين رباني د دريو مياشتو له پاره د جمهور رييس په توګه ټاکل کېږي.

په دغه مسخره ډوله پریکړې سره د امریکا او پاکستان هدف داو چې دا تنظیمونه په خپلو کې وجنګوي چې همداسې وشول او افغانستان په هره برخه کې د تباهۍ کندې ته ولید.

کابل ته د صبغت الله مجددي د راتګ په وخت کې چې قدرت د پرچمیانو په لاس کې و، پرچمیانو نه غوښتل چې د یو منظم پلان له مخې قدرت مجاهدینو ته تسلیم کړي، بلکې په یوه مختصره غونډه کې جنرال عظیمي په تلویزیون راښکاره او په یوه خاص انداز یې وویل: دا دی مونږ قدرت مجاهدینو ته تسلیم کړ.

تر دې وخت پورې خلقیانو نه غوښتل چې قدرت د نظار شورا، دوستم او جنرال عظیمي ته تسلیم کړي، هغوی داخله وزارت او نور ټول قطعات حزب اسلامي ته تسلیم کړل. له همدې ورځې نه په کابل کې اختلاف را څرګند شول، د حزب او جمعیت جنګ ونښت. چې نتیجه یې د افغانستان په تباهۍ او بربادۍ تمامه شوه.

په پای کې خپلې خبرې داسې راغبرګوم، چې انګریزان په نولسمه پیړۍ کې او روسان په شلمه پیړۍ د افغانستان په نیولو بریالي نه شول. د دوی دریځ د افغان مجاهد ولس په وړاندې یو ډول و، چې د لوستنکو به هرو مرو پام ورته شوی وي.

# ماخذونه


۱-افغانستان تولو ته یو درس او ازموینت. غ،ف. اعظم۱۹۸۲م کال

۲- افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار، ۱۳۴۲ کال.

۳- افغانستان په نولسمه پېړۍ کې. سید قاسم رښتیا ،۱۳۴۱ل کال.

۴- شاه شجاع او ببرک د تاریخ په تله کې. حبیب الله رفیع، ۱۳۶۴ل کال.

۵- تحلیل واقعات سیاسي افغانستان (۱۹۱۲- ۱۹۶۲ م.)

عبدالحمید مبارز، طبع دوم ، ۱۳۷۷ل کال.

۶- ژوندي خاطرې په تیرو نهو لسېزو کې ، افغانستان تاریخ، ډاکتر عبدالعلي ارغنداوي. بي،بي،سي. پښتو څانګه ۱۹۹۷ز کال.



# مننه او کورودانې

د افغانستان ملي تحریک د هېواد پال او فرهنګپال شخصیت ښاغلي (حاجي وحیدالله ولیزي) څخه د زړه له تله مننه کوي چې د دې اثر چاپ ته یې اوږه ورکړه. ملي تحریک ویاړي چې د علمي اثارو د چاپ لړۍ یې پیل کړې ده. دا لړۍ به دوام لري. موږ له ټولو درنو هېوادوالو څخه په خورا درنښت هیله کوو چې په خپل معنوي او مادي وس د کتابونو د چاپ دا لړۍ لا پسې وغځوي.

یو ځل بیا د دې اثر له لیکوال او چاپوونکي څخه د زړه له تله مننه کوو چې د دې اثر د لیکلو او چاپولو جوګه شول.

په فرهنګي مینه

د افغانستان ملي تحریک

